بسم الله الرحمن الرحیم

## شاعر څنګه کولای سي چي د خپلو بیتونو لپاره تشبیهات او استعارې وکاروي؟




د شاعر په ذهنیت پوري اړه لري که د شاعر ذهنیت له (Cruft ) یا ډېرو سولېدلي الفاظو څخه ډک وو او مکرر الفاظ یې په شعر کي درلودل هغه تر هغه وخته په خپل شعر او بیتونو کي نوي تشبیهات او استعارات نسي راوړلای چي د خیال تومنه ور سره ملګري نکړي د خیال د تومني ملګرتیا پر دوو اساسي برخو ویشلای سو :

1. هغه برخه چي د نورو شاعرانو شعرونه مطالعه وسي. نوي خیالات، تفکرات، نوښتونه، نوي استعارات، نوي تشبهات او نوي مسایل یې په شعر کي وینو او بیا د هغوی په تمرین او تکرار سره پر خپل پر ذهن فشار راولو او هغو ته ورته استعارات، تشبهات په شعر کي راولو د مثال: په ډول غر، لمر، سپوږمی، ستوري ،ګلرخ، محبوب، عاشق، معشوق ادا ټول هغه تکراري الفاظ دي چي په شعرونو کي لیدل کیږي خوځیني شاعران کولای سي دغه اصطلاحات، او کلمات چي ده په خپل شعر کي کارکړي، یو بل څه تشبه کړي او د استعاري په توګه ورسره راوړی دي ادا (اصطلاحات،کلمات) یي له ساکن حالت څخه و متحرک حالت ته تغیر ورکړی دی تشبه یی هم متحرکه کارولي وي هغه داسي چي په اصل کي هغه ساکنه وي د خپل محبوب یا ګلرخ مخ یا رخسار یې له سپوږمی سره تشبه کړي وي سپوږمی په خپل حالت کي خاورینه کره ده، خو د لمر د انعکاس په نتیجه کي ښکلي سي شاعر یا عاشق سړی د خپل معشوق تصویر (مخ) له هغه سره مشبه کوي ادا هغه حالت چي ساکن یی متحرک ته تغیر کړي لکه استاد احمد صمیم چي یو په غزل کي وایي:

ج

د اســـمان د بحـــر پیغلـــه ډیـــره ښـــکلي ده لمبیـــږي.

د اوریځـــې پـــه څپـــه کـــي کلـــه پټـــه کیـــږي

صـميم صـاحب سـپوږمۍ تـه مسـتعاراً د « اسـماني پـيغلي » نـوم ورکـړئ، او د هغـې مـداري حرکـت لـه اسـلامي او افغـاني کلتـور لـه «سَـترَ» سره د د اوريځـي پـه پوټېـدو مسـتعار کـړئ او خـاکي سـپوږمۍ يـې پـه متحـرک انـداز کـي پـه شـاعرانه الفـاظو ترسـيم او متحرکـه ثابتـه کـړې ده ، پـه دا ډول حالـت کـي زاړه سـوليدلي شـاعرانه الفـاظ پـه نـوي انـداز کـارول سـوي او شـعر يـې نـوې بڼـه لـري او پـه خپـل شـعر د نـورو شـاعرانو څخـه لـوړ مسـتقله لاره لـري، د شـاعر ذهنيت او وړتيا ددې سوې چي په شاعرانه برخه کي د خلګو پام ور واووړي .

2. پـه خپـل ذهـن بانـدي داسي فشـار راوړي چـي د هغـه بـه نتيجـه کـي داسي خيـال را منځتـه کړي چي د بل چا پـه شعر کـي نـه وي: فـرض مثـال لکـه يـو شـاعر پـه خپـل شـعر کـي د ټوپـک ټکـان راولي او يـو شـاعر د بمونـو ړغ لـه يـو شي سره تشـبه کـوي، خـو د پخوانيـو کلاسـيکو جنګونـو چـي تـورې کـارول سـوي پـه هغـه کـي بيـا دوی تشـبه مثـال نلـری ، خـو يـو شـاعر بيـا د هغـه جنـګ صـحنه چـي بـه هغـه کـي د دوو تـورو د ټکـر لـه وجهـي يـو ډول غـږ رامـنځ تـه کيـږی شـاعر هماغـه رامـنځ تـه کيـدونکی « هـش هـش» ږغ کـاروئ وي چـي دا پـه خپلـه يـو نوښـت او رنګينـــي ده او يـــو اســـتعاروالی دی چـــي ده کـــارولی دی پـــر ذهـــن بانـــدي فشـــار راوړل د سـوليدلو کلماتـو تـه نـوې بڼـه او رنـګ ورکـول او يـا نـوي پنځونـه چـي تـر اوسـه پـه شـعر کـي نـه وي او د خيـــال څخـــه اســـتفاده نـــه وي ســـوې، نـــوی خيـــال او شـــاعرانه انځـــور را وړل سي همدغـه تـه مـوږ نوښـت وايـو هڅـه او هانـد يـې دا دی کـه يـو شـوک شـاعر نـه وي او پـه زور بانـدې ځـان شـاعر کـوي هغـه دي پـه خپـل ځـان زحمـت او تکليـف نـه راولي ځګـه هغـه نسي کولای يـوه منـزل تـه ورسـيږي او کـه يوڅـوک علاقـه د شـعر او شـاعرۍ ولـري کـه څـه هـم نـه وي کولای سي د همدې علاقې پراساس له ځان څخه شاعر جوړ کړي

په درنښت!

نوراحمد"قرآن مل"

عقرب ۱۴۰۳